


# کندهار



صدر اعظم ښاغلی نور احمد اعتمادي په داسې حال کې چې د کندهار په
خرقه شريف کې د ننه د حضرت سرور کائنات [ص] سپيڅلي
روح ته دعا کوي په عکس کې د کندهار والي ښاغلی
محمد صديق هم ليدل کيږي.

(نور تفصيل ئې د پښتۍ پر دوهم مخ)

# دجاپان په جهانی

## نندارتون کی دافغانستان ګډون

دثور په ۱۶ نیټه والاحضرت شهزاده احمدشاه او د هغوی میرمن و الاحضرت خاتول د جاپان دامپراطور دکورنۍ او حکومت په بلنه دجاپان داوساکا په [۷۰-۱ کسپو] جهانی ننداړتون کی دافغانستان د مخصوصې ورځې په مراسمو د جاپان د ځینو برخو په لیدنو کتنو کی دګډون دپاره دتجارت دښاغلی وزیر په شمول جاپان ته ولاړل موږ دهمدې ننداړتون په مناسبت دلاندی لیکنه دګرانو لوستونکو دپاره خپروو .

ننداړتون:

لومړی بین المللی ننداړتون وار دواره په ۱۸۵۱ کال کښی په لندن کښی جوړ شو . شهزاده «البرت» دملکی «ویکټوریا» میړه ددغه ننداړتون په جوړولو کی پوره د لچسپی درلوده او کم وخت چې تیار سو نو په خپله دملکی په لاس باندی افتتاح شو دغه ننداړتون ئې په یوه داسی ځای کی جوړ کی چې دهغه ځای ټوله آبادی په ښیښه او اوسپنه تیاره سوی وه [باته په ۷ مخ کی]

# صدراعظم ښاغلی اعتمادی

## او ملګری وزیران ئې دهیواد په شمالی او لویدیځو ولایتو کښی د اټلس ورځنی مسافرت نه وروسته کندهار هم ولید

کندهار د ثور لومړی نیټه :-

صدراعظم ښاغلی اعتمادی ، دصدارت دوهم مرستیال د پوهنې وزیر دکتور عبدالقیوم او د ښاغلی صدراعظم نور ملګری وزیران او ذوات چې دحمل په څورلسمه ورځ د اجتماعی عمرانی او کلتوری چارو د کتلو له پاره دهیواد شمالی او لویدیځو ولایتو ته تللی ؤ کابل ته د بیرته راتګ په لاره کی پرون دحمل په ۳۱ نیټه له غرمې نه وروسته په دوو بجو کندهار ته راورسیدل .

ښاغلی صدراعظم په دغه اټلس ورځنی مسافرت کی دسمنګانو بلخ ، جوزجان ، فاریاب ، بادغیس ، هرات او فراه ولایتو ته تللی او د نوموړو ولایاتو د مسئلو او مشکلاتو په باره کی د خبرو په ضمن کښی له خلکو سره نژدی تماس نیولی او له دوی سره د ټولو مهمو اجتماعی مسئلو په باب غږیدلی دی .

ښاغلی صدراعظم په ټولو ځایو کی د معظم ټولواک همایونی اعلیحضرت ښې آرزو ګانی شاهانه رعیت ته ورسولی او د شمالی او لویدیځو ولایتو عمرانی اجتماعی کلتوری چاری ئې په مفصل ډول وکتلی .

ښاغلی صدراعظم او دده ملګری وزیران چې د کندهار ولایت ته راورسیدل دغرمی ډوډۍ ئې د کندهار له والی او عسکری قوماندان اړ ددی ځای له مخورو سره وخوړله .

دصدراعظم ښاغلی نوراحمد اعتمادی او دده د ملګرو وزیرانو په دل ارام کی د کندهار د ولایت دوالی ښاغلی محمد صدیق دعسکری قوماندان تورن جنرال محمد سعید د محکمې رئیس ښاغلی مولوی عبدالواسع ، سرپرست ښاروال ښاغلی محمد افضل [شیردل] او د کندهار د یو شمیر مخورو له خواهر کلی وشو .

ښاغلی صدراعظم کابل ته له روانیدو نه پخوا د حضرت محمد [ص] خرقې ته ولاړل او د حضرت سرور کائنات روح ته ئې دوعا وکړه او درود ئې ورواستاوه او د خرقې شریفې دساحې د توسیعې په باب یې د کندهار سرپرست ښاروال ته هدایت ورکړ .

ښاغلی صدراعظم او ورسره ملګری د دغې ورځې پر پنځو بجو د کابل ولور ته روان شول .

د امتیاز خاوند : د طلوع افغان نشراتی مؤسسه
مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار
میاشتنی خپرونه
تاریخی، اجتماعی، علمی، ادبی
اداره: د شهید انو واټ
د تاسیس کال ۱۳۳۹
دیوولسم کال دوهمه ګڼه
پر له پسی ګڼه ۱۱۶

کالنی بیه
په کندهار کی [۲۸] افغانی
د هیواد په داخل کی [۳۲]
په د باندنیو هیوادو کی یو ډالر

دغویی میاشت
۱۳۴۹ لمریز کال

## ددې ګڼې مضامین

# بحث او انتقاد

د بحث او انتقاد ضرورت هغه وخت د یوې جامعې د افرادو په منځ کې پیدا کیږي چې د انسان عمومي مصالح په غیر محل کې استعمال شي یا په علمي آراو کې تناقض او کمزورتیا راشي داځکه چې انساني فکر او د ژوند انه ټول

اړخونه د وخت او زمان د تیریدو سره سم خپل د ځوانۍ او شباب قوت د لاس ورکوي او د زړتیا له اثر ئې رنګ و بڼه تغیر مومي.

د ټولنو ژوند او ارتقا کټ مټ د یوه فرد د ژوند د مراحلو سره نژدې شباهت لري ځکه چې انسان په خپل فردي ژوند کښې د طبیعت د قانون په اساس مجبوردی چې د هلکتوب

زلمیتوب او زوړتیا دوره سره له خپلو حالاتو او خصوصیاتو تیره کړي د غه ډول ټولنې هم بایدد دې طبیعي اصولو مراعات وکړي او

د یوه حال ځخه و بل حال ته سره د خپلو شئونو او حالاتو واوړي او د فکر و نو مجري او د خیالاتو لاري هم سم ورسره نوي کړي.

که څیري د طبیعت دا ابدي قانون بشري ټولنې ومني او د وخت او زمان د قوماندې سره برابر ګامونه واخلي نو به انساني چارې او

مدني ژوند کوم چې انسانئي د حاصلولو په لار کښې ګړندي ګامونه اخلي شدومرو کشالو او مصیبتونو سره مخامخ نه وي.

د اجتماعي نظام څرخونه به په خپل عادي حالت کې سره څرخي او هره پرزه بې خپله وظیفه د وخت د آهنګ سره سم اجرا کوي.

برخلاف که څیري د نوي جامعې د یوې دوري حالت پای ته ورسیدی او د ارتقا ځخه د دوهم حالت پړه کوله او خوښي ئې د اجتماعي ناموس د تکامل هر کلي نه کاوه د لته نه یوازې

موږ باید د ا جامعه د اعقل او بینائي له خوا ځخه نیمګړي و بولو بلکه د هغې جامعې د انحطاط او فنا حکم هم باید صادر کړو. لیکن دلته بیا

اجتماعي شعور راویښ او ژوندي کیږي او خپل د آویښتوب او نوي ژوند د افکارو د عکس العمل په شکل په جامعه کښې ښکاره کوي د زړو متداولو آراو او نظریاتو سره د

یوې خوا په مجادله پیل کوي او هغه ته د شکست او ارتیاب په سترګه ګوري د بلې خوا ځخه زاړه

دودونه چې د زماني د اوښتو سره نو رنو د عملي کیدو ځای نه وي ورته پاته غندي.

او دخپل نوی ژوند پاره د ښو فکرونو اساس ایښنودی او خپلی اړتیاوی ، ومدنی ضرورتونه دعصر دمادی ظروفو دطاقت سره سم

تامینوی او دژوند په ټولو اړخونه کښی د تجدد او تحول مساوات او عدالت غوښتلو حس روزی .

موږ د اجتماعی تحول او دفکری نهضت نخښی چی دشك او انتقاد په جامعه

کښی دلومړی ځل لپاره په اولسونو کی دزړې عقیدې او زاړه ژوند په مقابل کی سرپورته کړی د پخوانیو

جماعتونو او لرغونو امتونو دژوند په جریان کښی په لاندی ډول لیدلاشو :-

۱- زوړ او پخوانی مصر دی .

کله چی په مصر کښی د فراعنه ؤ سلطنت قایم ؤ

او خلکو ئی د شخص پرستی وعبادت ته راپالل دظلم او دبی انصافیو او رونه بلؤ او اکثریت د جامعی د مرنی

او مینځی په نامه دغټا نو او زمین دارانو په کورو کښی چوپړ او خدمت کاوه او د

مدنی او سیاسی حقوقو څخه محروم ؤ او د خلکو پر ذهنیتونو باندی خرافاتو تسلط چلاوه بدې وخت او زمان کی د فکرونو

انکشاف راغی او د خپل عصر ومتداولو نظریاتو او آرائو ته په شك او ګمان وکتل شول او د

انتقاد دروازی خلاصی شوی د انتقاد او تشکیك دهغو زړو افکارو او زاړه نظام عکس العمل ؤ چی د مصر دافرادو په منځ کی

پیدا شو او جامعی وهغو کسانو ته ضرورت درلود چی په خپلو لارښوونو سره زوړ فکر او زاړه

دودونه له منځه وباسی او جامعه له رکود او جمود څخه وژغوری کله چی دټولنی د تحول شرایط آماده شول نو حضرت موسی [ع]

مبعوث شو چی دجامعی دفکری ساختمان او اجتماعی شئونو د بدلولو د پاره خپل کوښښ جاری وساتی .

دوهم هند او دهغه شاو خوا ملکونه وه . کله چی خرافات ، طلسم او جادو د شیئو حقایقو

لاره بنده کړی وه او زاړه دود و دجماعاتو له ګریوان څخه لاس نه اخیستی او د هغه وخت جامعه ئی د ترقی او پرمخ تګ څخه راګرزوله نو دجامعه د تغیر

نه قبلونکی ناموس پر اساس و ټولو متداولو افکارو او نظریاتو ته په شك او انتقاد وکتل شول .

ددې عصر ډیرو کسانو د نوی فکر دراوړلو او زاړه ژوند د اساساتو د نړولو د پاره خپلی هڅی او تلاښونه

شروع کړل څو زمینه د بودا وراپاڅیدو ته مساعد شوه او هغه خپل فکری او اجتماعی

اصلاحات په نوی رنګ او جلا پرده کښی تصمیم او رواج کړل داهم باید وویل شی چی د نو ابغو وجود او پیدا

کیدل د اجتماعی او اقتصادی شرایطو محصول بلل کیږی په زیاته بیا هغه وخت د فکر لارښوونکی په ټولنو کښی

سرراپورته کوی چی د فکرونو لار او اجتماعی حالات زاړه او له کاره

لویدلی وی او جامعه دموادی چی د نوی فکر او تجدد و خواته خپل تګ او نهضت شروع کړی .

اوس به یو څه خپلی څیړنی پسی اوږده کړو او دخپلی مدعا د ثابتولو لپاره به د یوی بلی ټولنی اجتماعی

د ساتیر او د فکرونو لاری وښیو .

د پخوا نیو جماعتونو په لړ کی د یوی جامعی چی

نسبتاً روښانه حالات ترموږه پوری را رسیدلی دی هغه د یونان لرغونی جامعه ده .

کله چی موږ د یونانیانو و مذهب، علوم او دود دونو ته د مخه تر اوه کښیږو عالمانو، سوفسطائیانو او

سقراط ته مراجعه وکړو او هغه ته په ژوره کتنه و گورو نو دا به په ښه ترا ثابته شی چی

د هغه وخت اجتماعی حالات او د فکرونو مجری د تحول وړوه او جامعی باید سره له خپلو ما دی شئو نو د ژوند

په یوه نوی صحنه کی گام ایښی وای .

خو نکه چی د ژوندانه

ټولی چاری د عقل لار ښود نی لاندی اداره کیږی او هم ټول اجتماعی او مدنی نیمگړ تیاوی هغه وخت

کیدای سی چی عقلونه اصلاح او ذهنیتونه روښانه شی پداسی حال کی چی د فکر د خرافاتو په لومه کی بندی

وی هغه هیڅ وخت د حقیقت د جمال ننداره نه سی کولای او نه د داسی خرافاتی فکرونو خاونده جامعه د ترقی او نهضت په لوری خوځیدلای شی .

موږ کله چی د اجتماعاتو د ترقی علل او د انحطاط عوامل پلټو ترټولو د مخه کله چی د دې ټکی سره مخامخ شو چی د یوی

جامعی د افرادو پر ذهنیتونو باندی خرافات مسلط او تو همات چار چاپیره گرزیدلی دی نو حکم

کوو چی دا جامعه هیڅکله د تجدد او ترقی په لوری حرکت نه شی کولای او نه د خوشبختی او سعادت همای د دوی پر سر و

باندی د یوه گړی د پاره سایه اچولای شی کله چی د یونان جامعی لکه د هغه وخت نوری

ټولنی د طبیعت آثار لکه لمر، تالنده، بحر او طوفانونه باد او باران پرستش کاوه او د خپلو خدایانو ئې په انسانی شکل سره

تصویر کاوه او تش ئې په ښایست او قوت کی تر انسانانو پورته بلل سربیره پردی بی د خپلو مړو

نیکه گانو تر دې حده عبادت کاوه چی په خپلو کورونو کی بی د هغو مجسمی درولی شاعرانو د خپلو

نیکه گینو د ستاینی کارنامی په رنگینو الفاظو کښی د عوامو د فکری او ښتنی د پاره وړاندی کول حتی د

کوچنیانو د روزنی په پروگرام کی داهم شامل وه چی باید د دې زړو داستانو ځنی یو څه په یاد و لری .

هم ددې عصر دوو تلو شاعرانو ځنی د ی چی د خپلو رب النوعو او نیکه گانو

کارنامی ئې د او دیسی او ایلیاد نومی کتاب کښی راغونډی کړی او د هغه عصر د خرافاتو او عقلی

ضعف یوه خورا ښه مجموعه شمیرل کیدای شی .

سر بیره پردی د اجتماعی نظام چاری دومره وړانی وی چی خوارانو او بی وسو خلکو د ښهری ژوند په

کارونو او انتظام کښی هیڅ رایه نه درلوده د یونان د هغه وخت په مدنی ژوند کی په لسو تنو کښی یو نفر آزاد

او نور مریان وه د مریانو او ښځو سره ډیر بی رحمانه او غیر انسانی سلوک کیدی حتی چی دوی د ټولو مدنی

او سیاسي حقوقو څخه محروم
بللې شوې وه د هیواد عمومي
مصالح د څو تنو زمین دارانو
او بډایانو په لاس کښې وه :

چې هر څه به د وی غوښتې
هغه به ئې کول .

د عوامو اختلاف نظر
دې حد ته رسیدلی و چې په

کوڅه او بازارونو کښې د
د دنیا پر قدامت او حدوث
باندې بحث او څیړنه کیدله
او ډیر ځله به دا بحث د

شخړیوان ترڅیریدو او د سر
تر ماتیدو رسیدې .

پدا سې وخت کې ځرنګه
چې فکرونه او د ژوندانه
ټول مظاهر زاړه شوي او د
طبیعت د ناموس په اساس

اجتماعي شعور را ویښ
شوی و هغه چې د لومړی
پلاه پاره د اعکس العمل د

ټولنې د مخالفو افکارو په
ترڅ کښې خپل ځانونه ښکاره
کړل او د جامعې و ټولو
متداولو افکار او عقایدو

او د ژوندانه و اجتماعي
نظام ته په شک او انتقاد و کتل
شول .

د دې نوو او ارتقا پسندو
افکارو خاوندان یوه او ه

کسیزه ډله وه چې وروسته د دې
ټولنې له غبرګ څخه سولون
قانونګذاره و میدان ته راغی او

په جامعه کې یولړ اصلاحات
د متوسط ډلې په ګټه و کړل او
د غلامانو د پاره ئې هم نسبتاً
آسانتیاوې برابرې کړې لیکن

ځرنګه چې د جامعې ساختمان
او اجتماعي شئون بیخي زوړ
سوی او اساسي اصلاحات ئې

غوښتل نو د دې پروګرامو هم د ملت
افکار قانع نه کړای شوی او نی د اقتصادی
او اجتماعي عدالت مزې په ټولنه
کښې ټینګ کړ . نو ځکه وروسته

تردې یوه بله ډله عالمان پیدا
شول چې د عصر و ټولو شیو نو ته ئې
په اورا تیاب و کتل او د ټولو
افکارو او متداولو عقایدو څخه
منکر شول ځکه ئې د وی
شکاکان وبلل .
تر دې فکري بحرانو او پاشلو
آراؤ څخه وروسته د یونان پر
آسمان یو ځلاند ستوری ځلیدی
چې په خپل فکري نهضت سره ئې
جامعه وښوروله او تر ټنو پوری یې
اخلاقي لارښودنې د عملي کیدو
وړ دی، دی با ایمان متفکر د خپلې

جامعې د فکري ضعف او خرافاتي
نظریاتو سره سخت جګړه روانه
کړه او د خپل عصر خو د ساخته
معبودان ئې و غندل او د طبقاتي
امتیازاتو مخالفت ئې شروع کړ

او انسانان ئې ټول دیوه
بدن اجزا وبلل او د فکر
پرواز ئې له آسمانو څخه
ځمکې او د ځمکې اوسیدونکو

ته راشیوه کړه سقراط د
فرد آرامي د اجتماع په
تعمیر کښې غوښته او د
اجتماعي نظام ښیګڼې ئې

د افرادو د اخلاقي قوت او
باطني محاسنو محصول باله
ځرنګه چې ده د خپل عصر

خدایانو ته په سپکه کتل او
نظریات ئې غندل او طبقاتي
امتیازات ئې د یوې جامعې
په منځ کښې غلطه او ناروا

بلل او هم ئې و ځوانانو ته
فکري لارښوونې او د وی ېې
د زاړه ژوند د اساسو لو

وړلو ته راپاځول ځکه نو
د جامعې استفاده جویانو
د ده د دې فکري نهضت او
اساسي تحولاتو د زغملو

حوصله نه درلوده، دی ئې د
جامعې د ویښولو په ګناه
بندي کړ او د څو مودې

وروسته ئې د زهرو په
څښلو محکوم کړ دا د
انسانیت دلاری شهید مړ شو

[پاته ئې په ۵ مخ کې]

لیکونکی [فدا محمد]

# دټولنی داجتماعی تکامل

## اساسی شرط

موږ تل دااوریدلی دی اویقین لروچی :(اجتماعی ژوند د ټولنی دشعور ټاکونکی دی).

دلته باید داتشریح شی چی د اجتماعی ژوندڅخه مقصدڅه د ؟

اجتماعی ژونددټولنی مادی ژونداوترهرڅه دمخه دخلکو تولیدی فعالیت او هغه تولیدی مناسبات دی

چی دتولید په‌جریان کښی د انسانانو ترمنځ راپیدا کیږی دټولنی دمادی ژوند

مسئله‌چی د ټولنی چهره ایدیالوژی نظریات، سیاسی مؤسسات اوداسی نورټاکی زموږدزده کړی دپاره هغه

اساسی مسئله‌ده‌چی موږیی داسی طرح کوو:دټولنی د تکامل شرایط کوم دی؟

په‌دې کی خوشک نسته چی جغرافیاوی محیط د ټولنی دتکامل یودایمی او ضروری شرط دی د جغرافیاوی محیط څخه زموږ مقصد هغه طبیعت

دی کوم چی ټولنه یی احاطه کړی ده یعنی آب وهوا-کانونه،خاوره،رودخانی دریابونه،اوداسی نوربلی!

جغرافیاوی محیطدټولنی دتکامل جریان تیز یاپڅ کوی اما دا تاثیر دومره

تاثیرنه‌دی کوم چی دټولنی دژوندسرنوشت‌دی وټاکی ځکه د ټولنی تغیرات او تکامل تل د جغرافیاوی

تغیراتواو تکامل نه‌ډیر چټک وی نوځکه پوهیږو چی جغرافیاوی محیطانسی

کولای چی داجتماعی تکامل تعینونکی اواصلی علت وګڼل شی .

وروسته تردی نوپدې

کی‌خو هم‌شک نسته‌چی د نفوسو زیاتوالی اودتراکم اندازه یی دټولنی‌دمادی✿

---

د ٤مخ پاته

## بحث او انتقاد

لیکن افکاراونظریات ئی‌ژوندی پاته شول .

دده‌ترمړینی وروسته دهغه شاګردانو دده علمی نظریات تدوین او ترتیب کړل او دد‌نیا ټولوخلقو ترډیرو پیړیو پوری وهغه ته‌دتسلیم سرونه پرمځکه کښیښوول اودمدرسودقیل وقال باعث‌شول.اودیونان د فکر لار ئی بدله کړه اونتیجه‌داشوه کله چی داقرادو فکرونه‌اودژوندانه نوراړ خونه د وخت او زمان د تیریدو سره‌سم‌زاړه اوله کاره ولویږی نوباید ونوی فکر او نوی‌ژوند ته‌چی دزمانی‌په حکم سره زیږیدنکی دی لاره خلاصه شی اوکه‌څوك د عنعنه پسندی له‌اثره دنوو‌خیالاتو او عصری ژوند سره مجادله وکړی نونه یوازی بی ځه لاس ته ورنه شی بلکه‌د زمانی په‌وړاندی به‌ډیر سپك اود اخلاقو په‌نظر کښی به‌ډیر مسئول اودترټنی وړوی .

[ ا،م کرزی]

☼ ژوند مفهوم د متشکله موادو څخه دی ځکه انسان د ټولنی د مادی ژوند د شرایطو یو حتمی او لازمی عنصر دی موږ پوهیږو چې د نفوسو زیاتوالی د ټولنی په تکامل کی موثر دی خو هغه آسانه کوی او یا یی په ځنډ کښېباسی

اما د نفوسو زیاتوب نسی کولای چې د بشری ټولنی د یو ټول خاص سیستم اصلی تعینوونکی قوه سی ځکه د نفوسو زیاتوب موږ ته داسی نسی

رابښودلای چې ولی د یوه سیستم پر ځای بل او د بل پر ځای بیا بل منځ ته راځی . که چیری د نفوسو زیاتوالی اجتماعی تکامل ټاکلای نو باید د هر څه زیات نفوسو یو ځای والی یو ډیر

ښه ټول سیستم منځ ته راوړلای .

مثلا په دی تاسی ټول خبر یاست چې د هند نفوس د اتحاد شوروی تر نفوسو ډیر دی مگر

په اقتصادی او د ژوند د تکامل په لحاظ شوروی اتحاد یوه او یا حتی دوې تاریخی مرحلی تر هند مترقی دی .

د لوړو معلوماتو څخه داسی پوهیدلای شو لکه چیرن چې فکر کوی جغرافیاوی محیط او د نفوسو زیاتوب د ټولنی د کامل عمده قوه نه ده او نه داسی شرط دی چې د اجتماعی سیستم یو خاص ټول او د ټولنی چهره وټاکی بلکه برعکس پخپله د وی د اجتماعی نظام په خصلت پوری اړه لری .

د اجتماعی تکامل اصلی علت د مادی شتمنیو د تولید طرز دی چې اوس بی په مطالعه باندی لگیا کیږو د تولید په طرز او ټول کی دوه شیان مهم دی چې د اجتماعی تکامل تعینوونکی دی .

۱- تولیدی قوه .
۲- تولیدی روابط .

## لومړی د تولید قوه

د دې د پاره چې موږ ژوند وکړو باید خوراک او اغوستلو شیان د اوسیدلو ځای او داسی نور ولرو چې د دې مادی نعمتو د لرولو د پاره باید هغه تولید کړو .

او د تولید لپاره یی د تولید آت او وسایل باید ولرو چې د هغه په مرسته انسان کولای شی خپلی لومړنی اړتیاوی تولید کړی تولیدی ابزار چې په مرسته ئی مادی شتمنی تولیدیږی او همدغه رنگه هغه کسان چې د تولید دغه آلات په کار اچوی په مجموعی توگه اجتماعی قواوی تشکیله وی خو د و نه خبره ده چې تولیدی قوه یوازی د تولید یوه خوا تشکیلوی چې هغوی د طبیعت د قوا وسره د انسان د رابطی معرف دی .



د پښتی د دوهم مخ پاته

# د جاپان په جهانی .....

پردغه ځای باندی ئې
د پلوړی مانۍ نوم ایښی و
نو موړی ننداراتون
خورا کامیاب و . له هره
ځایه څخه خلک ورته راغله

او د ننداروسامانو نه ئې ورته
راوړه ځینی تیز بینوا اسانا او
چی د ننداراتون وضعیت
ولیدی نو دوی ته د بین المللی
امنیت اساس ښکښی و بریښیدی
ځکه دوی چی هلته خلک
ولیدل چی په یو د بله همکاری
ئې د ننداراتون لوی ترتیب
په ښه سره پاله او هیڅ ئې
د اوږی ته نه لویده چی دغسی
سره خوا په خلک به بیا هم
جګړه وکړی او سره و به خوری
متاسفانه د دوی هیله خاوری
سوه ځکه تر ننداراتون درې
کاله وروسته د «گریمین»
جګړه ونښتله .

پس له دې نو په لندن
پاریس، ویانا ایټا نیویارک
، مانچستر، شیکاگو، او نورو
ځایو کی لوی لوی ننداراتونونه
جوړ شویدی . په کال ۱۹۲۴
کی یو بل لوی ننداراتون
په «وومبلی» کی تیار شو چی
«د امپراتوری ننداراتون» نومیدی
دغه رنګه په کال ۱۹۳۸ کی یو خورا
غټ ننداراتون په «گلاسکو» کښی
جوړ شویدی چی ځلوېښت میلیونه
خلک هلته ورغلی وه .

ننداراتونونه که څه هم په
ښکاره د جګړی مخه نسی نیولای
خو دا مرسته بیله شکه او شبهې
کولای شی چی د اولسو ترمنځ
دوستانه مناسبات تقویه کړی
و ننداتون ته له هره هیواده څخه
شیان راوړه کیږی او د نړۍ
له هره ګوټه څخه نندارو کوونکی
ورته راپیښیږی .

د بیلو بیلو اولسونو راونځی
نسی کولای چی دغه شان «لکه په
ننداراتون کی چی وی» سره راټول
سی یو ځای کار سره وکړی او له
نږدی څخه سره ووینی پرته له
ننداراتون څخه نه فرصت لری او نه
کولای شی چی وپیژنی په خوی او
بوی سره اموخته شی عادات او
د افکارو د طرز لاری سره وپیژنی
او یو د بله سره شفقت او ازدیکت
روحیه پیدا کړی او یو د بل په باره
کی د ژوند معلومات سره واخلی .

سربیره پر ټولو خبرو
ننداراتونونه د تجارت او
معاملی د وسعت له پاره ډیر
کارور کوی ځکه هر هیواد
هلته خپل د پیداوارو نمونی
راوړی او سوداګرو ته
ورمعلومیږی چی د کم ځای
شی د کم ځای د خلکو خوښیږی
او د دې شیان په کم ځای
کی ښه خرڅیدای شی او
ګټه پر کیږی یا په بل نامه
ننداراتون د شیانو د غټو
اعلانو او تبلیغ د پاره په
زړه پوری نمایندګی کوی .

البته د داسی ننداراتونو
لویه ګټه په دې کښی ده چی
د صنائعو د ترقۍ لاری ښکاره
کیږی د نوو اختراعاتو
او مترقی اصولو اساسات
ښکښی لیدل کیږی د دنیا د
هری برخی صنعت و الاهلته
د ماشینانو نوی او تازه
ډولونه لیدلای شی او څه
ترقی چی په نورو ځایو کی
ښکښی راغلی وی هغه ئې
ګرده تر نظر تیریږی که څوک
هلته له ځینو شیانو څخه

اخیستیو کړی او یو شی اختراع کړی او د یو شی په ساختمان کی آسانی راولی نو له دې لاری څخه بیا د جائیزو ښندنه هم گرزی .

ننداړتو نو له تعلیمی اهمیت هم لری ځکه زیات پر دغه چی په ننداړتو نو کی د بیلو بیلو هیوادو پیداوار ښکاره کیږی هم دارنگه د ښارو او تعمیراتو او کښتو او او کلو نمونی ښکنې ښودل کیږی او ډیر داسی مثالونه هلته ننداره کیږی چی د بیلو اولسو نو له ژوند او عادا تو څخه پوره نمایندگی کولای شی او تره نور معلمان له خپلو شاگردانو سره و ننداړتون ته ورځی چی هلته هغه بیان په دوی د وینی او ورته تشریح لی کړی چی هغه په کتاب کی ښه پوره نسی زده کید لای .

نو ننداړتو نو نه د تجارت، تعلیم او بین المللی روحیی د تقوی د پاره زیاته مرسته کولای شی .

۷۰-اکسپو او په هغه کی د افغانستان غرفه :

هغه بین المللی ننداړتون چی (او یا اکسپو) نومیږی او د جهان لوی صنعتی ؤ هنری ننداړتون دی د جاپان په (اوساکا) کی د تیر کال د حوت په ۲۴ نیټه پداسی حال کی چی لس زره داخلی او خارجی میلمانه حاضر وه د جاپان د امپراتور اعلیحضرت هیروهیتو له خوا په خاصو مراسمو پرانیستل شو، پدې ننداړتون کی چی دوام ئی شپږ میاشتو ته رسیږی [۷۷] ممالکو د پنځو براعظمو څخه گډون ښکنې کړی دی دا ننداړتون به تقریباً اویا ملیونه خلک وگوری چی پدې پول به د ممالکو د کار او فعالیت نتیجه د قضاوت، تقدیر او تمجید په معرض کی قرارو نیسی لکه چی ایدل کیږی دا بین المللی ننداړتون چی په جاپان کی افتتاح شو لدې حیثه چی د دې آسیائی مملکت په همکاری جوړ شویدی ډیر د اهمیت وړ خبره ده ·

دا مملکت [جاپان] چی د جهانی دوهم جنگ د خرابیو او مصارفو سره هم مخامخ شو نن ورځ د جهان په صنعتی ممالکو کی د یوه لوی قدرت ښښتن گرزیدلی دی ·

په نوموړی ننداړتون کی ئی شل میلیارډه ډالره سرمایه گذاری کړې ده·

د افغانستان غرفه چی په [ ۹۰ ] مربع متره ساحه کی جوړه سوې ده د پرانیستو په ورځ څلور افغانی نجونی چی ملی کالی ئی اغوستی وه ۳ رنگه بیرغ ئی پلاس کی ؤ د امپراتور او میلمو نو و مخ ته تیری شوی·

د افغانستان په غرفه کی زموږ د لرغونی او لاسی کار و نمونی او طبیعی پیداوار چی هغه د زراعتی او کانی محصولاتو څخه عبارت دی په یوه اندازه کی ځینی د ماشینی صنعت نمونی ایښول شویدی خو هغسی لکه نوره دنیا چی په ماشینی صنعت ئی نظر ورجلب کړیدی افغانستان پدې حصه کی ترشا پاته دی چی یوه خاصه توجه ورته په کار ده .

اوس چی کومی متاعوی لکه د تاریخی آثارو مستظرفه صنایعو- یا طبیعی پیداوارو له جملی څخه چی وی په کوم ننداړتون کی ایږدو د لیدونکو د خوښۍ باعث گرزیدلی وی ·

(ټولوونکی م، ی، و، ن)



دالهلال له عربي مجلې څخه

دښاغلي «نجيب» ژباړه

# «دحب مزاياوې»

پرون چې د هيڅکل په وړه کښې وو ديدلم او له تيريدونکي څخه مې دحب د مزاياؤ پوښتنې وکړې هغو په لاندني ډول سره جوابونه راکړه:

پر يوه پوخ سړي باندې چې د زړه توب منې تازه چپاو راوړی ؤ مخ راواړاوه او راته ويل:-

حب و هغه فطري ضعف ته ويل کيږي چې له اولنيو انسانانو څخه په ميراث

راپاته شوی دی يوه چاغ مزي زلمي په ترسيم سره هلته ليري د حب د کلمې تفسير په دې الفاظو سره کاوه.

حب د هغه عزم نوم دی چې حال مو له ماضي او ماضي مو له مستقبل سره وصلوي، يوې ښکلې ښځې پسرناري کړه ياداسې نه ده:-

حب د هغو وژونکو زهرو ته ويل کيږي چې د يوه غټ تور اژدهار له خولې څخه د دوږخ په يوه غار کې

دسا په صورت سره راوزي وروسته دفضا ترخپريدو څاڅکو په څير سره دضامه ارواحو په سړو ننوزي هغه يوه شپه مستوي او بيائي محوه کوي.

يوه ماشوم د موسکي، موسکي کيدو په حال کې ويله بابا! حب دهغه کوثر نوم دی چې هرسهار

دخوښۍ څاڅکي پر قوي ارواحو باندې خوني کوي او د شپې پر مهال باندې دستورو په وړاندې تمجيد وايي په ورځ کښې بيا د لمر وړاندې ته مخامخ په ترنم سره تسبيح لولي.

يوه سياه پوښه سړي چې ګړ وريښته پر يره ئي وه په ډير قهر او غضب سره ويله کوم مې رشتيا پوښتې حب هغه جهالت دی چې دځوانۍ په ابتداکې شروع او په انتها کښې ئي ختميږي.

يو ښايسته سړي چې دژوند په نشه مست معلوميدې زما وخواته راغی آو راته وی ويله مه خطاوزه حب وهغه لوړ معرفت ته ويل کيږي چې زموږ سترګې داسې روښانه کړي چې د آلهه ؤ

په څير سره هرشي په وينو، يوه وند چې پر لاري باندې پر لکړه تيه او له ضعف څخه ئي ټوله اندامونه زيږديدله

راتيرشو او په خورا مايوسانه لهجه سره ئي وويله: حب هغه کثيفه او ريځ ده.

چې نفس له هري خوا څخه پخپل احاطه کې تينګګ نيسي او د وجود رسمونه تردې اندازې پورې څيځې پټوي

چې غير له اشباحو او اميالو څخه بل شي نه وينې او د راديو دخلايا او له آوازو څخه بل شي نه اوري.

يوه نوي ځوانۍ ته رسيدلې زړګي بيا دړباب له ډرنګۍ سره داسې ويله:

دا د دوي خبري کورټ مه منې، حب دسهار وړاندګه ده چې دحساس ذات له اعماقو څخه پيدا او ټوله شاوخوا

په روښانه کيږي يا په بل عبارت هغه سپوږدی چې دزړغونو څړځيو په ميانځ

کې تیریږي، که ئې به تعریف غواړی دهغه حلم نوم دی چې دخوب او ویښې په مابین کې منتصب شوی دی .

یوه سپین ږیری بوډاچې د ژوندانه او مرګ په میانځ کښې ئې لنډوالی پاته وو ویله: حب دقبر دراحت نوم او یا هغه ساعتی ده چې دابدیت په غیږ کښې ئې سړی میندلای شي .

یوه پنځه کلن هلك بیا په خندا او خوښیو کښې نارې وهلې خلکو واورې: حب پلار زما دی، حب مور زما ده، زه حب غیر مور و پلار څخه په بله معنی سره نه پیژنمه .

ورغ په همدې ډول سره چې هرڅا به دحب په باره کې خبرې کولې دهیکل په وره کې راپاندې تیره سوه ماښام شو تیریدونکی مخ پر کمبود شوه پدې وخت کښې مې له دننه هیکل څخه دا آواز وغوږ وته راغی چې ویل ئې ای دحب د ځرك پلټونکی تا ته وایمه ژوند پردوو برخو باندې ویشل شوی دی چې نیمې ئې مجلد او نیمې ئې ملتهب دی ودغې ملتهبې برخې ته حب ویل کیږي چې تا ئې په پښتنو ګرویږونو ځان ستړی کې دا بیان چې مې واوریدی نو سمدستی پرر کوع او سجده ورته پړی وتلم او په لوړ آواز سره مې دا-وویله یا پاکه خدایه ماددغه پاك اوردلمبو پیلو ځی کی آمین .

[پای]



ټولونکی غروال

## افکار

افسوس پر هغه چاچې په ژوند کې کوم منظور نه لري او دورځو په تیریدو کې کوم کار نه انجاموي هغه ژوندی نه دی او ژوند ئې تر مرګ بدتر دی .

[هما، یونانی شاعره]

انسان عجیبه موجود دی اوریځ، باد، سپوږمۍ او لمر دده لپاره کار کوي او دی د بې خبرۍ په حال کې ورځ تیروي .

[هر بوت]

هغه لوی کمال چې د تحول او تکامل په لاره کې د ژوندیو شیانو په برخه رسیدلی دی قلبي عواطف دي چې په انسان کښې لیده شي که څوك عواړي چې له حیوانا تو لیری وي باید دغه عواطف چې رحم، مروت، کرم، شجاعت او نوعه پرستی ده په ځان کې وروزي .

صلح یوه فرشته ده چې همیشه د بنو انسانانو پر مځکه اوسی او کله چې انسان خراب شي نو دا فرشته و آسمان ته ځینې پورته شي او دوی تباه سی .

[الفرد موروفی]

لیکونکی نثار احمد [رمیا]

# ادبیات څه شی دی؟

دادبیاتو په باره کښې د
د خورا پخوا څخه پوهانو
خبرې اترې کړی دی ځینو
یوړول تحلیل کړیدی چې
په ژوند کی یې هیڅ رابطه
نه درلوده او ځینو بل ډول
تحلیل کړی دی چې په ژوند
کې یې رابطه درلوده لیکن
په درست شکل نه وه لیکن
کوم وخت چې د ژوند مادی
شرایطو تغیر وکړ او
تولیداتی قواو انکشاف

وکړ نو په دغه وخت کښې
نه یوازې د انسانانو اقتصادی
انتظام پرمخ ولاړ او د ژوند
ټول احتیاجات یې لکه
څرنګه چې لازم وه پوره
سوه بلکه د ژوندانه ټول
اړخونه په هغه احوال سره
ارتقاومیندل چې په دغه
وخت کی فلسفه ، عنعنه
اجتماعیات ، سیاست او
ادبیات هم مخ د تکامل پر
لور روان شوه په هره
اندازه چې یو لیکوال ډیر
په خپله جامعه کی ورننوتلی
وی په هغه اندازه کامیاب
او موفق لیکوال بلل کیږی
البته په دې شرط چې د یوې

جامعې عمومی او خصوصی
قوانین ورمعلوم وی یعنی ادبیات
د ژوند تشریح کوولو څرګندولو

او تصورولو ته وایی او په عمومی
ډول د واقعیت پر اساس پردوه
ډوله دی چې یو ته یې ریالیزم
یا واقعیت پرستی او بل ته یې
ایدیالیزم یا خیال پرستی
وایی ریالیزم او ایدیالیزم
دواړه په خپل ځان کی پر څو

برخو ویشل کیږی او موږ به د
ریالیزم اقسام یو څه بیان کړو
ځکه چې په انسانی ژوند پوری
ډیر اړیکی لری .

۱- ایدیالیزم د ادب له مخی:

وهغه ادبی مکتب ته وایی چې
په هغه کی د واقعیتو مراعات
نه وی شوی او لیکوال هغه څه
بیانوی چې یا یې د خپل خیال
محصول وی او یا د هغه خیالی
ادبیاتو تر تاثیر لاندی راغلی
وی چې لیکوال پخپله مطالعه
کړی وی .

۲- ریالیزم :

ریامیزم وهغه ادبی مکتب ته
وایی چې په هغه کی د اجتماعی
واقعیتو مراعات پوره شوی وی.

او د جامعې حوادث لکه
څرنګه چې واقع کیږی
تسریع نې د دغه ادبی مکتب
وظیفه ده .

ریالیزم پخپله دری
برخی لری . ابتدایی ریالیزم
انتقادی ریالیزم او اجتماعی
ریالیزم .

۱- ابتدایی ریالیزم :

په دغه ادبی مکتب کښې
لیکوال صرف وظیفه لری
چې د یوی جامعې په ټولو
سترګو بیان ترکړی یعنی
هغه څه چې موجود وی په
هغه شکل سره یې بیان وکړی
لیکن په دې نه پوهیږی چې
د جامعې نقص څنګه رازو باسی
او څرنګه یې انتقاد وکړی
او څرنګه یې رهنمای وکړی
خو صرف هغه څه چې د
لیکوال تر نظر لاندی وی
هغه ترسیموی او څرګندوی
یې .

۲- انتقادی ریالیزم :

په دغه ادبی مکتب کښې

ليکوال وظيفه لري چې سربېره د يوې جامعې پر ځرګندولو او ترسيمولو د هغې جامعې ښه اړخ او بد اړخ هم بيان کړي او هغه ځه چې د انتقاد وړ وي انتقاد پرو کړي او کهٔ د انتقاد وړ نهٔ وي بايد په شدت سره ئې تائيدو کړي .

ځوا کې دغه ډول ادبي مکتب زور غواړي ځکه دلته ليکوال مجبور او مکلف دی چې و پوهېږي جامعه تر کوم قوانينو لاندې حرکت کوي البته په دې ځای کې به ليکوال دومره معرفت

د قوانينو سره نلري لکه ځرنګه چې ښايي ليکن بيا هم تر ابتدائي ليکوال پوه او عالم وي ځوچې نوموړی ليکوال خپله ټولنه انتقاد کړای شي .

په دې ډول ادبي مکتب کې بالزاک چې د فرانسې د اتلسمې پېړۍ يو ستر او نامتو ليکوال دی . ډېر-ر

زيات مهارت او شهرت لري حتی بالزاک پخپلو ليکونو او رسالو کې تر دغه چوکاټ لا هم ور تېر سويدی .

۳-اجتماعي رياليزم :

په دغه ادبي مکتب کې د ليکوال وظيفه دغه ده چې ليکوال بايد خپله ټولنه وپېژني او تحليل ئې کړي او هم ورته متوجه شي چې نوموړې ټولنه په کومه دوره او په کومه مرحله

کې ده نو بايد ليکوال د دغې ټولنې ټوله عمومي او خصوصي قوانين ښه و څېړي او علتونه به ئې واضح کړي .

دغه ډول رياليزم داد بياتو

يوه لوړه او متکامله مرحله ده په هره اندازه چې دغه مرحله د بشر په نيکمرغي تماميږي په هغه اندازه د رياليستيک ادبياتو زړه يا هسته جوړوي .

نو د دغه ادبياتو پوهېده

هم ګران او عملي کېده يې تر وس وتلی کار دی . د رياليزم په تاريخ کښې هم دغه اجتماعي رياليزم خورا

لږ وخلکو په کار اچولی دی يعنې هغه چې د دغه ادبي مکتب په دغه مرحله کې ئې کار کړيدی هغه د دغه ادب پلار بلل کېږي .

## د اوښکو فواره

څه د پاسه ۴۴۰ کېږي چې د روسيې د کرملين* په جزيره کې د تورسيند پرغاړه يوه عجيبه فواره سته چې اوښکې ترې ځاځي د فواره د وخت د سلطان له خوا د پولهستاني نفر چې [ ماريا- بونوکسا ] نوميد په ياد جوړه شويده دی پاچا پداسې حال کښې چې د عصبيت تر زيات تاثير لاندې راغلی و د خپل يو محبوب د مرګ باعث شو . د خپل ژوند تر آخري ګړي پوري په ژړا او فرياد تېر او ده د خپل زړه د غمونو د آرامۍ د پاره د حرمسرای سلو مينځيانو ته امر وکړ چې يو ميه څلور څلور ساعته ژاړي ځرنګه چې پدې کار سره د پاچا څه تسکين و نه شو نو د پاچا د هدايت سره سم بيا يوه داسې فواره جوړه شوه چې په ۲۴ ساعته کښې له هغه څخه يو څاڅکی اوښکه و بهيږي کله چې له دې فوارې څخه يو څاڅکی اوښکه و بهيږي نو د ستې بل څاڅکی پسې راوزي تر هغه وخته چې په دنيا کې د مځکې پر مخ و اوره او او باران وي د ا فواره به تل تر تله خپلې اوښکې تويدي .

د ښاغلي نصرت ژباړه

# ناتورالیزم

دغه مکتب په اروپا کی په ۱۸۸۰ او ۱۸۹۰ کی رواتلی او دیو ادبی مکتب په شکل تر پایه پاته نشو دشلم قرن دنویسندګانو په آثارو کی ئی بعضی علام شته او ویلای شو چی دامریکی او اروپا بعضی لیکوال د ناتورالیزم د آثارو څخه په خپلو تالیفاتو کی کاراخیستی دی ناتورالیزم پر څله په ناروا او تحقیقی فلسفه بناؤ دده لاری بانی اورا ایستونکی اوګست کنت او مهتمم ئی هیپولت ټن دی امیل زوال دده مکتب دلویو پیروانو څخه ؤ .



## رومانتیزم

رومانتیزم دهغه خاص ادبی مکتب نوم دی چی دفرانسی د۱۹ قرن لیکوالو راایستلی دی هدف ئی خاص د کلاسیک د روش سره مخالفت دی کومی مختلفی معناګانی چی دغه سبک وروسته پیدا کړیدی هغه دادی .

[۱] رمانتیزم په فرانسوی ژبه کله شاعرانه خیال بافیو ته ویل کیږی هغه کسان چی خوب او خیال ګوری هغو ته مانتیک ویل کیږی .

[۲] هغه روش چی داصولو څخه مخالفت کوی .

[۳] په هغه معنی اخیستل شوی دی چی د ۱۹ قرن لیکوالو خپلو آثارو ته ایښی دی .

په فرانسه کی د رومانتیزم پیدایښت د کلاسیک مکتب دعکس العمل څخه پیداشوی دی اما برخلاف په المان او انګلیستان کی د ادبی نبوغ او دادب دوینا ؤ تکامل ته ویل کیږی .

رومانتیزم د لومړی ځل لپاره په انګلیستان کی پیداشو او بیا المان ته ولاړ او په ۱۹۳۰ سنه کی فرانسی ته داخل شو دغه ادبی انقلاب د اجتماعی او سیاسی واقعاتو په مسائلو کښی تاثیر وا چوی لوی لیکوال لکه لا رماتین، ویکتور هوګو، الکساندر روما الفرد دوموسه په هیجانی طوفانو کی منځ ته راوستل .

د رومانتیزم اصل سجیه او وصف د احساساتو او تخیل د ترجیح څخه پر عقل او استدلال عبارت دی یا په بل عبارت شخصی احساساتو او تخیلاتو ترجیح پر عرفی او د ادب پر عمومی قوانینو دی .

رومانتیک د لارماتین او ویکتور هوګو آثارو په نشر سره ډیر شهرت او ترقی وکړه په ۱۹ قرن کی څنګه چی دی ادبی مکتب ټوله دنیا و نیول نو په مقابل کی ریالیزم پیداشو .

د(س) ژباړه

# ادبي بزم څه و؟

څه وخت د مخه ښاغلي [ژواک] د کندهار د سفر په ترڅ کې څو پوښتنې درلودې چې یوه پوښتنه ئې دا دې ځای د هغه پخواني ادبي نهضت په باره کې وه کوم چې ښاغلي او ر پېدلي یا لیدلي ؤ .

په همدې کندهار کې به د سردار مهردل خان (مشرقي) په ادبستان کې د میرزا حنان او د کندهار د څو نورو فاضلو شعراؤ په ګډون ادبي څپړنې روانې او په خپلو مجالسو به ئې

د دې خاورې ادب ژوندی ساتلی ؤ [سردار مشرقي] پخپله د ده ادب پروره ورونه او میرزا حنان ، شمس الدین ، عبدالله پوپلزی او د هغې ادبي حلقې نور ملګري اوس تر خاورو لاندې دي .

د پښتو ادبیاتو قیمتي ذخیرې په همدې کندهار کې وموندل شوې - پټه خزانه - د سلیمان ماکو تذکرة الاولیا - د احمدشاه بابا د عبدالرحیم

هوتک - د ملا پیر محمد کاکړ - د جانان [فدوی] د شمس الدین کاکړ - د ماشور د حاجي جمعه د عبدالله پوپلزي د میزا حنان او څه داسې نور ادبي اثار پدې ځای کې لاس ته راغلي دي او

داسې ډېر اثر ونه چې زموږ د پاره ادبي خزانې دي اوس هم لا ورک دي د لته د یوې بلې ادبي دورې خبته پیاوړي پښتون محمد ګل مهمند کښېښودل لیکوال او شعرائې سره راټول کړه

ادبي جریان ئې ډېر تود ساتلی ؤ .

اوس چې ښاغلي ژواک و لیدل د دې ځای هغه دېرش کاله د مخه ادبي انجمن او د هغه

اعوان ؤ انصار نه وه د لته په مرحوم مخلص حاجي ولي محمد د کرزپه ملاعبدالسلام په حکیم ملا محمد عیسی په سید حسین [سید] په ملا عبدالمنان [حیرت] په رحمت الله بابا په عبدالله

[نورزی] په ګدا عبدالنبي په ملاجانان [په نوریانو] او نورو شعراؤ د دې ځای د ادب بزم تود ؤ .

ژواک ښاغلي د دې ځای د ادب دې ډ بلبلان او عندلیبان یو په ستر ګو ونه لیدد کرز ملاسلام لدې جهانه کوچ کړی ؤ مخلصان تر خاورو لاندې شوي وه ملا عبدالمنان حیرت جامې کت

کړې وې عبدالله وفات سوی ؤ ، رحمت الله بابا د عربستان په ریګستان کې ښخ شوی ؤ سید حسین [سید] عبدالنبي نور او نور د قبر بندیان وه ،

ملا محمد عیسی حکیم د مرګ پر بستر سګلی وهلی . نور څو ک چې دوی لیدلي وه هغه مړه شوي ، یا زاړه شوي یا کوچهدلي وه چې وائي :

ماویل زه به لا ویدن کړم دیارانو
ز څو ځي راغلم یاران آللي میښې توري

---

خبره به پردې ځای نه تماموو بیا هم دغه [پوهاند حبیبي] هغه څراغ چې مهمند لګولی

ؤهغسی روڼ وساته او د ادب په برخه کی ئي کار دو رانبکاره هم دی .

اوس : که د سر شماریه پر أساس وی نو دخدای له داده لیکوال او شعرا مو پیر شو یدی حتی د بومنتون

فارغان د اوسنی لیکوال دی تهو که کتاب وګوری او په جرائدو کی وګوری

[خو ادبی برم چی دلته د ادب مینا نو لیدلی ؤ له برمه لو یدلی دی] .

زه د انسم ویلای چی ما به دښاغلی ژواک دی یوی پوښتنی ته جواب ویلی وی خو دو نه قدر په عمومی قضاوت

سری ویلای سی چی دلته د نوری د نیا په نسبت جریان سر چپه دی هلته چی یو مخترع

خپل دفکر محصول وړاندی ته راو ایستلی دی نو کسه

مخترع مړ سوی هم وی هغه اختراع ئی له منځه نده تللی

بلکی یو بل چا پسی ور تکمیل کړی وی چی ددی خبری مثالو نه ډیر مو ندل کیږی .

تاسی پدی برخه کښی دلته ولیدل چی دسردار

[مشرقی] ادبی برم دمحمدګل مهمندادبی نهضت دهمدوی سره ولاړ - په همدی قیاس

چی نور نهضتونه هر چا راوستلی دی دهغه شخص

د تنګ سره تللی یا کمزوری سوی وی .

داچی ښاغلی [ژواک] ددی ځای دادبی برم پر زوال حسرت کوی حق لری

مو ږ هم د تائید په نیت ځو ځاځکی اوښکی ورسره تویوو .

او ژوندو لیکوالو او شاعرانو ته ئی وایو چی ای خواتورو - دژوند په ګنګرو

اخته ؤ - سره آیت ؤ پرګ او پرسفر تللو لیکوالو !

آیا ربښتیا لکه زه چی

وایم ادبی برم مود (تللو سره ولاړ .

که داسی نه وی نو تاسی د خبری ( ملو نه ) په لاس کی واخلی اوووا یاست چی

[ددی ځای ادبی برم څه سو؟

ښاغلی [ویران]

## دپسرلي موسم

باور وکړی چی د پسرلی په موسم کی هر څه پاک وسوتره دی

په دی موسم کی کومو دیوی و نی څخه که مه میوه له تنه بیله

کړه پوه سی چی دیوی محرابا نی مورزړه موو چاود .

که مود سا آیری په وخت کښی یو ګل له ښاخه وشکاوه او په

بی پروایی موله ځانه لیری کړ داسی جنایت مووکړ چی یو خوش

ارواح کو چنوټی مو د ګرانی مورله غیږی څخه واخیست .

که مود هوا کوم مرغه و نیاوه او په قفس کښی مو بندی کړ

و پوهیږی چی د آزادی له دنیا سره مو لو یه ګناه وکړه .

زوای هغوکسانو ! چی په دی دخوښی هوس اوښکلی فصل

کښی په خپل سخت زړه سره دخندا ډ ک محفل ته غم او خوا شینی راولی

پوه سی چی دلویی ګناه لایق ګرزی ، او ستاسو دا جنایت لوی

څښتن [ج] نه خوښوی ځکه : دی خپله حقیقی مالک دی

چی د خاوری په طبیعت کی زیاته ښکلا او روحی نشاط راولی .

دښاغلی نیازی ژباړه

منثور ادب

فریاد - عطائی

# د لیکـــوال مناجات

لویه خدایه !!!

مالاروړکی تهلاره ښیه! هغهلار چی د خلکو دهوسائی اوانسانی ژوندوسره منزل ته ګللی وی ...

لویه خدایه!! مالاروړکی تهلاره وښیه!

زه نهپوهیږم . زما دفکر او عقل نیلی نور له پښو نه لویدلی دی .

زه نهپوهیږم څه ولیکم ؟ دڅهلپاره ئې ولیکم ؟ دچاپهویاړ ئې ولیکم؟ نهپوهیږم څه ولیکم!!

که دبی پلاره ماشومانو تور زبیښلی مخونه وستایم کهدښکلو ګلرخانو توری سترګی او اوږده زلفان ؟ . .

دخزان پهمابنام کی دبی نوا بلبل مظلومیت تصویر کړم که دپسرلی سپینه سپوږمۍ دګل او بلبل ناز او نیاز ؟؟

که دبی حالو میخورانو دوچو شونډو صفت وکړم او کهنه دجام او پیالی لپاره مشبه مشبه بهی پیدا کړم ؟؟ ...

نهپوهیږم څه ولیکم ؟؟ لویه خدایه !!!
نهپوهیږم څه ولیکم ؟؟؟

دخپل پریشانه خیال بی وزره مرغه د کنډوالو اوخرابو پهخدمت وګمارم او که د ادب شهکار دښایستی معشوقی دهیلو نوکر وګرزوم ؟؟؟ ..

نهپوهیږم څه ولیکم ؟...

پهزړه کښی می ډیری هیلی ، ډیر امیدونه ، ډیرارمانونه ... غونډی غونډی پراته دی ...

مګرزما داظهار ژبه ګونګه ، دلیکلو توان می تللی دی دقلم لاس می مات دی ... نو نهپوهیږم څه ولیکم ، څنګه ئې ولیکم ؟؟
لویه خدایه !!!

که دا [لومړی] ولیکم نو بههغوی راته خفه شی ، له بڼ نه به می وباسی ، او کههغه [دوهم] ولیکم نو بهستا له درګاه څخه وتړل شم وجدان او ضمیر بهمی مخ دلعنت پهلاړ ولوند کړی ...

لویه خدایه!! زه نهپوهیږم څه ولیکم؟ دا کههغه ؟ نوای د کاینا تو خالقه! ته راسا فکر او سوڅند قلم راکړه چیپه ایمان ، پاک مخ او سپیڅلی کامیابی ووزم ، قوی فکر او پراخه حوصله راکړه چهددی ټولو نه نجات ومومم نهپوهیږم څه ولیکم ؟ څنګه ئې ولیکم ؟ دچالپاره ئې ولیکم؟؟؟ .....

د اپریل ۲۱ نېټه د شرق د نامتو شاعر ډاکټر محمد اقبال د زېږېدو ورځ ده زموږ جرائدي او ورځپاڼي پدې ورځ د دوی لوړ شخصیت لمانځي - موږ چې د دوی د شخصیت د ستایلو په ترځ کې د ښاغلي [بخرکی] لیکنه خپروو دا هم ږر زیاتوو چې مرحوم اقبال د افغانستان د یوه سفر په ضمن کې کندهار ته هم راغلی او د کندهار ستاینه ئې کړېده ۱۰ او اقبال مرحوم لکه د نړۍ د ډېر شاعران یو ظریف طبیعته سړی هم ؤ.

وائي کله چې نوموړی په ښوونځي کې زده کړه کول نو یوه ورځ ناوخته ورغلی ؤ.

ښوونکي ورته وویل چې اقباله ولې ناوخته راغلې ؟

ده ورته وویل: چې اقبال هر چا او هر ځای ته همیشه ناوخته ورځي نو ځکه زه هم ناوخته راغلم.

محمد علم «بخرکی»

د اقبال د زېږېدنې د تلین له کبله

# علامه اقبال

د قومونو په تکامل سېر کې کوم رول چې شاعرانو په تېره بیا انقلابي شاعر، بل څوک داسې رول نه سي لوبولی، اقبال د پاکستان ملت ته پداسې وخت کې خدمت وکې لکه خوشحال

خټک چې د پښتنو په سخته کې وکې د دواړو قومونو د آزادۍ په تاریخ کې خټک او اقبال نه هېرېدونکي شخصیتونه دي.

اقبال د خپلې فلسفي بنیاد پر خودارادیت ایږدی، او د آزادۍ لېوال دی، دده ګټوره حیاتي فلسفه یوه خاص قوم ته منسوب نه ده بلکه د ټول بشریت اتحاد او ارتقاء غواړي.

په انساني خویونو کې دوی خودي یعنې په ځان باور ته په ډېر نه سترګه ګوري او د

ټولنو ترقي او زوال په همدغو ټکي کې بولي.

غلامي د بشریت د پاره تر ټولو عیبو لوی ګڼي لکه وائي چې.

از غلامی دل بمیرد در بدن
از غلامی روح گردد بار تن

بشریت پرستي یا انسانیت خواهي په علامه اقبال کې خوراډېره وه او ده به په خپلو اکثرو شعرو کې د خلکو حوصله ورلوړوله او دوی به ئې دغه ته متوجه کول، چې د کائیناتو د تسخیر لپاره

تاسې یاست لکه یو ځای چې دوی وائي.

نائب حق در جهان بودن خوش است
بر عناصر حکمران بودن خوش است

بل ځای وائي :

✡

☼ ماهوا از بهر تسخیر است وبس — سینه ئې اوعرضه تیر است وبس
جستجو را محکم از تدبیر کن — انفس وآفاق را تسخیر کن

فطرت شناس اقبال کور کورانه تقلید دقومونو دزوال موجب بولی څوک چې مسایل پخپل ځان کې نه تحلیلوی هغه خوراغندی لکه وائی چې :

دلاز ندانی پروانه تا کی
نگیری شیوه مردانه تا کی
یکی خودرا بسوز خویشتن سوز
طواف آتش بیگانه تا کی

بل ځای وائی :

مرد حق از کس نگیرد رنگ وبو
مرد حق از حق پذیرد رنگ وبو

اقبال د بې ځایه تقلید کولو پر ځای څوانان فکر کولو ته دعوتوی او دغرب ترقی ئې په لباس او کپ و کالو کې نه بلل او ځوانان به ئې فکر کولو او علم زده کولو ته رابلل دی وایی .

قوت فرنگ از علم وفن است
ازهمین آتش چراغش روشن است
علم وفن را ای جوان شوخ وشنگ
مغز می باید نه ملبوس فرنگ
اندرین ره جز نگه مطلوب نیست
این کله با آن کله مطلوب نیست

دځه غوښتلو ځخه داقبال علیه رحمه پر بدرا تلله، او قوم ئې دې خبری ته دعوت کاوه چې :

رزق خود را از کف دونان مگیر
یوسف زلیخا خویش را ارزان مگیر
پشت پا زن تخت کیکاؤس را
سر بده از کف مده ناموس را

لنډه دا چې داقبال شاعری په شلم قرن کې شرق ته یوه نوی روحیه وبخښله، او هم ددغه شاعر په برکت شرقی جهان له درانه خواب ځخه راویښ او د نوی نسل او عصر بنیاد یې کښېښود .

ژواك

## نیاز مني !

و بخښه چې هغه بله ورځ تا ته لاهم بل چا بې نیازه وویل پدای ـی حال کښې چې زه تا ته همیشه نیاز منه وایم او دا نوم ستا د نیاز مني وضع سره ورهم دی .

گرانی دوی وائی چې ته پیر زړونه زهیروی او دچا پر خوږمن زړه رحم او مهربانی نه کوې .

داخبره ستا په برخه کې صادقه ده مگر گرانی داهم باید ووایم چې هره بې رحمی تا غوندی نیازمنه نشی بې نیازه کولای ځکه ته وائی چې زه نه غواړم چې ځان ار زانه خرڅ کړم یا دا چې ما نه په بازاری رنگ رلی وکتل شی .

منم گرانی چې ته یوه بازاری متاع نه ئې مگر دا چې دمینې بازار په تا گرمیدای شی پدې کې څه وائې !

زه خو وایم چې ته نیاز منه ئې او ستا بې نیازی دمنلو وړ نده او حتی که ووایم چې ته د نیاز منو د زړو مالکه او خاونده ئې هم د منلو وړ ده .

خوږې :

بیا هم بخښنه غواړم چې ستا د نیاز په جهان کې ستا بې سلادر که پدل غواړم .

کیږی دمینو لیونیو کار به همدغه وی چې ستا د نیاز په جهان کې ورغیږی . او ستا دمینې بازار په خوږو زړه خوږ کړی .

سره لدی پوول اعترافه چې تا نیاز منه بولم او سره له هغه قیمته چې ستا نیاز من حالت ته ئې ورکوم بیا هم اجازه راکړه چې ووایم :

ته دمینې دجهان هغه ستوری ته ورته ئې کوم چې د ماښام په وخت تر نورو ستورو ځان روڼ ښئي

مگر لږشیبه وروسته ..
هو ! لږشیبه وروسته الو نیا غوندی شی .




پښتوانې ادب:

# د بهار ګلونه شوي دي که نه دي؟

عاشقان دې په اور سوې دي که نه دي ؟
ستا د عشق په اور الوې سوي دې که نه دې ؟
زخمتونه د هجران واړه په عشق کښې
تا وماڼو ته ښودلي دې که نه دې ؟
په دنيا کښې خوېو سر او مال ټيا ديري
ما په تا دواړه بايللي دي که نه دي ؟
تل دور ځو په ليدو د ښور عيشي
تا په ما باندې راښکلي دې که نه دي ؟
چې مدام نې زما زړه له غمه چوي
دواړه زلفې دې پېچلي دې که نه دې ؟
راشه وګوره ! احوال د عاشقانو
مړه د عشق په تيغ کوټلي دې که نه دې ؟
ناصحان چې نصيحت وچاته کاندې
چېري : وي هم هين شوي دي که نه دي ؟
ښايسته که په ښايست ملائکه وي
په وونکو د زړو نوروي : ي که نه دي ؟
بلبلان پسې ناري وهي «رحمانه»
د بهار ګلونه شوي دي که نه دي ؟

«رحمان بابا»

بناغلی [رښتا]

# زموږ حال

تل وکښته خواته لغړو لکه ماش
مخ پر لوړه روان نسو یو خاشخاش

په ټول عمر مو یوداسی کارونه کی
چی یو څوک دی راته ووائی شاباش

داچی حق باطلوو سبب ئی دادی
چی ماښام موکی مړلمه پر لوکی آش

چی دور څی ئی راټولی په رشوت کړو
ماښام جوړ کوو میدانو نه د پلاش

و بڼوای ته په بارو خـټکـی وروړو
دغریب کره مو نـه وروی ه یو کاش

غمجن زړه یڼه اولوټی وی دخلکو
څوک می نه ولید خوشحاله مخ بشاش

مخ په کښته چی روان یو داعلت دی
چی بدا نـو تـه چا نـه وویل [باش]

---

## ګلای ریحه

د نرګسو کـلی بار سوی روا نیږی
په مزه مزه خمار راځه په ورو ورو

سره ګلاب سته په هرات کی لکه ناوی
هم رعنا په کندهار راځه په ورو ورو



د بنا غلی [سرین] تتبع او غونډونه

# د کندهار هغه نادره شعراء چې د زمانې په مختلفو ادوارو کې تېر شوي دي

## اشعار او آثار

مشرقي د فارسو ژبې مقتدر اديب و د ده فارسي ديوان تر پنځو زرو بيتو پورې رسېږي او په زرو بيتو مثنوي کې ئې د مولانا رومي د مثنوي لمړی بيتونه شرح کړي دي يو بل کتاب په تصوف کښې لري چې [جمع الجمع] نومېږي په پښتو هم مشرقي ځني متفرق اشعار لري چې نسبت و فارسي ته لږ دي د ده کلام خوږ او روان دی ادبي ښېګڼې لري او د پښتو په لمړي

درجه شاعرانو کې ګڼل کيږي اما افسوس چې چې د ده پښتو اشعار ندي يو ځای شوي او ورک دي له دې لاندې بدلې څخه په ډا ښکاره شي چې مرحوم مشرقي څنګه استاد او نه بدلې په پښتو ويلې او ډېرې لطيفو بدايعو څخه ډکې دي په دې لاندې بدله کې مشرقي د [سپېنې] کلمه په مختلفو معناو اړوی او د پښتو ژبې لغوی وسعت او کمال ئې ځرګند کړی دی او پوره تجنيس دی .

پلو وا خله له سپوږمۍ مخه مېر منې
ستا بې مخه را ته شپې دي ورځې سپېنې
ستا له ورو څخه تللای نسوای هورې دورې
در ته ناست يم په دربار پرې مې دې سپېنې
درست بدن مې د بېلتون په اور کې وريت شو
په ګو ګل کې مې وليږې تورې سپېنې
را ته وګوره رقيب سپک په څه شان کړم
خدای دې سپک کړي ستا په مخ ودې وزې سپېنې
زه پښتون يم نه بېرېږم له رقيبه !
ور ته وبه کړمه بيا ښې سپېنې سپېنې
«مشرقي» دې په تياره د بېلتون ژاړي
ور ته لمر د مخ ښکاره کړه په مخ سپېنې

نوټ:- په لومړی بیت کی سپیڼی دروغو صفت دی په دوهم بیت کی سپیڼی د ښو دشا پلوته وایی په دریم بیت کی توری غوښی مرادی په څلورم بیت کی مطلب سترګی دی په پنځم بیت کښی

مطلب سپیڼی خبری دی په شپږم بیت کی ومحبوبی ته خطاب دی چی ای په مخ سپیڼی چی مخ دی سپین دی. اوس نو د مشرقی د فارسی ادبیاتو یوه نمونه وګوری.

مخمس سردار مهردلخان مشرقی برغزل حافظ علیه الرحمه

آمد بهار باز با نفاس عیسوی
سر زد ز شاخ غنچه بسر تاج خسروی
تا صبحدم به صحن گلستان چو مولوی
بلبل بشاخ سرو به گلبا نگ پهلوی

میخواندد وش درس مقامات معنوی

تا تیغ ابرویت زغضب پیچ وتاب کرد
گیسوی تو بگردن جانها طناب کرد
لعلت هزار دل به تبسم کباب کرد
چشمت به غمزه خانهٔ مردم خراب کرد

مخموریت مباد که خوش مست میروی

یارب چه معجز است که بر پا نمود گل
از هــــــر کنارهٔ ید بیضا نمود گل
بر طرف شاخ برق تجلی نمود گل
یعنی بیا که آتش موسی نمود گل

تا از درخت نکتهٔ توحید بشنوی

از طرف شاخ هر گل خندان نمود روی
سوسن ترانه ساز شده بهر گفتگوی
نرگس گرفته ساغر می بر کنار جوی
مرغان باغ قافیه سنجند وبذله گوی

تا خواجه می خورد بغزلهای پهلوی

از مردمان خوشست رهایی وخواب امن
نیکو بود زخلق جدائی وخواب امن

عیشست طرفه بی سرو پائی وخواب امن
خوشوقت بوریا وگدائی وخواب امن

کین عیش نیست درخورا ورنگ خسروی

من گفتمت یکی سخن خوشتر ازگهر
دست ستم بچاك گریبان کین مبر

این پند خواجه راشنوای دیده پدر
دهقان سالخورد وچه خوش گفت باپسر

کای نورچشم من بجز ازکشته ندروی

کرده سیاه بختی خویشم بی زبون
افتاده ام بگوشه ویرانه سرنگون

زین ما جرا چگونه نریزم زید خون
این قصه عجب شنو از بخت واژگون

ما را بکشت یار به انفاس عیسوی

ضحاك جز مظالم عام ازجهان نبرد
کیاوس شد بحیرت وکام ازجهان نبرد

خسرو بغیر حسرت نام ازجهان نبرد
جمشید جز حکایت جام ازجهان نبرد

زنهار دل مبند به اسباب دنیوی

روزیکه مهر دل در میخانه راگشاد
دریای غم زصدق سرخویش را نهاد
از قلقل صراحیش این نکته شد بیاد
ساقی مگر وظیفه حافظ زیاده داد

کاشفته گشت طرهٔ دستار مولوی

[نور بیا]



## د فرانسې لوړ مجسمه جوړوونکی

باری د فرانسې د هیکل تراشی لوی استاد دی.
دی اصلاً د یوه کلیشه جوړوونکی شاگرد ؤ چې وروسته یې په دغه صنعت کې داولی درجې کلیشه جوړوونکو په صنعت و پېژندل شو مګر هغه څه چې دی یې معروف کړ دده بې مثاله هنری ذوق ؤ چې د پیکر تراشی د صنعت سره یې درلود چې ډېر آثار یې د هنر په بازار کې عرضه کړیدي.
دی په دغه کار کې د هغو دقیقو مطالعاتو په اثر چې په طبیعت کې کړیدي ود اسې ځای ته ورسیدی چې د حیوانی مجسمې لکه ببر، زمری، آس، غوائی داسې جوړې کړې چې لیدونکی به ژوندی احساساوه.
د [البردماله] په قول [باری] په پیکر تراشی کې یو منحصر هنرمند ؤ چې نه تر ده مخه او نه تر ده وروسته به څوک یو ګام هم لوړ ولاړ شي یا تللی وي.
دده د آثارو څخه یوه برخه د پاریس طاق دی چې په ۱۸۳۷ کښې ئې کړی دی.
چې په هغه کښې د فرانسې د هیواد (۱۷۹۲) کال د سر بازانو صحنه ښکاره کړیده

☆☆☆☆☆☆

## د نړۍ معماری د شاهکار د ډیانا معبد

د ډیانا ارتمس معبد د مسیح د تولد څخه پنځه کاله وړاندې د افه‌سوس په ناحیه کښې یعنې د اسمیرنا په جنوب کې اعمار شو.
د دغه لوی معبد په جوړولو کې د نړۍ ډېرو خلکو لاس درلود چې د مادی او نقشو په برخه کې یې ورسره مرسته کول دغه معبد د افه‌سوس معبد هم ګڼې دغه معبد کرار کرار د جوړیدو نه وروسته مقدسه جنبه پیدا کړه او له هر ځایه به خلک زیارت ته راتلل

د معبد مساحت ۴۲۵ په ۲۲۵ فټ کې ؤ معبد ۱۲۷ ستونه درلوده چې ډېر و ګرانبها او مخصوص مرمرو څخه جوړ شوی ؤ د هر ستون طول ۶۰ فټه یعنې ۲۰ متره ته رسیدی.
په ۳۶۵ کال کښې د مسیح تر میلاد وروسته اروس توستن د خپل قدرت او افتخار په موجب معبد ته اور واچاوه خو معبد په کلی صورت ونه سوځید خو تر څه وخت وروسته بیر ته هغه تعمیر شو.

بنا په ځینو تاریخی روایاتو مقدس هل [سنت هال] په دغه معبد کې بت پرستان د یکاله خدای وپرستش ته راوبلل تر ده وروسته نرون د معبد د تخریب امر صادر کړ او هغه یې خراب کړ مګر بیا هم د هغه آثار باقي پاته شول.

(د بناغلی تپاند ژباړه)

(ارغنداوی)

# قانونی اوسی!

قانون د یوه میلت د ارادې مظهر دی چې خپله

یې خلک په وجود راوړی او بیا بیرته د هغه و احکامو ته تابع او فرمان بردار وي.

یعنې که څوک د قانون اطاعت کوي او امرو ته یې غاړه بږدي نو ګواکې په حقیقت

کې د خپلې ارادې پیروي کوي او څه چې یې د ځان خیر او د نورو ګټه بللې وي پرځای کوي یې.

خو برعکس که څوک د قانوني مقرراتو څخه تخلف کوي او د هغه و احکامو ته

غاړه نه بږدي دا نو ګواکې د خپلې ارادې څخه سرپېچې

کوي او مستقیماً د شخصي او اجتماعي ګټو پر ضد حرکت

کوي او خپله ریښه په خپله په تیشه وهي.

قوانین که د یوې خوا د خلکو د مجموعي ارادې

زائیده دي خو څرنګه چې دوی په خپله کوم مادي جسم نه لري ځکه نو تطبیق

یې هم د خلکو د ارادې محتاج دی چې د یوې خوا باید د هغه

احکام پرځان باندې ومني او د بلې خوا نور هم د هغه د

اوامرو و منلو ته مجبوره کړي او چا ته اجازه ور نکړو

چې د قانون خلاف زموږ

سره په معاملاتو او مناسباتو کې رفتار وکړي په دې

صورت عمومي او خصوصي منافع تامین کېدای شي.

خو که چیری موږ دا آرزو ولرو چې قانون دی پخپله تطبیق شي.

او یا دا هیله راسره وي چې هر څوک باید قانون ومني خو موږ په خپله بیا د

هغه و اوامرو ته غاړه نه بږدو دا نو نه یوازې هغه خامه او بیځایه هیله ده چې هیڅ

نه ځینې حاصلیږي.

بلکې یو ډول فردي جرم دی چې د خپلې ټولنې په مقابل کې ترسره کیږي او کوم شکایات چې د چاسره د قانون د نه تطبیق په نسبت موجود وي صرف یو تظاهر او یا کاري ده چې بل شی نه بلل کیږي.

د مترقي او غیر مترقي ټولنو ترمنځ یوازې ستر توپیر همدغه دی چې د مترقي ټولنې خلک لومړی پرځان د پرهم پر نورو د قانوني احکامو تطبیق غواړي.

خو په غیر مترقي ټولنو کښې ومړی هر څه پر نورو او بیا د بل څخه غواړي؛ و دا نو هغه کار دی چې وايي ما هي چې نه یې نو یې ترلګې نیسي.

## خوږ سوغات

قند د لومړي ځل لپاره په ۱۸۱۴ کال کې د کارلاشل له خوا جوړ شو او د فرانسې و داخله وزیر ته د سوغات په توګه ورکړه شو.

[ژباړه]

لیکوالنکی بریښنا بخرکی

# د انسانانو لومړی اختراعات

[۱] اور او د افزارو جوړول :-

د اور څخه استفاده او د افزارو جوړول په ټولو ځایو کی رواج درلودی او یوازې د افزارو جوړول وه چی انسانان ئې د حیوانانو د جملې څخه جدا کول دا وټولو ته معلومه ده چی اور نظر وانسانانو ته د مخه وجود درلودی او ځکه چی د اور شرائط مخه تردی چی انسانان پیدا سی موجود وه .

چی د مختلفو عوامِلو په اثر لکه آتش فشانه غرونه ، تالندره او بریښنا ، آنی احتراق چی د ډیر حرارت په نتیجه کی منځ ته راځی . اما په تاریخ کی سمه پیښه د اور اهلی کول او د هغه څخه د انسانانو استفاده ده . کله چی انسان و کولای شوای چی د اور څخه د خپل ژوند په باره کی استفاده وکی هغه وچی وروسته تر دې ئې اور د یولوی همکار په ډول و بلل شو په اوله کی انسانانو بعضی تخنیکی استفاده ځنې کول . مثلاً د لرګو ځوکی به ئې سوځلې او تیرې به ئې کړې او هم دغه رنګه به ئې لرګی سوځل او د اصلحې په ډول به ئې استعمالول او په اوله کی انسانانو د ځنګلو د سوځلو لپاره هم د اور څخه استفاده کوله . او هم دغه رنګه ئې د اور په واسطه کلک حبوبات پخول او د ډیری مودی لپاره ئې ځانونه په هغه ساتل او په دې ډول به ئې ځانونه د قحطۍ څخه ساتل داخپله هم د انسانانو د تکثر د پاره مؤثر عامل ؤ. دا رنګه د افزارو جوړول هم د انسانانو پر ذهن باندی خاص اهمیت لری .

ځکه چی د یوې ساده آلې جوړول او استعمالول یوه اندازه عادت غواړی او هر څونه چی دی آلاتو انکشاف کاوه د انسانانو مهارت او فکری استعداد بهم په هغه اندازه پرمخ تللی .

همدا رنګه د افزارو جوړول او د اور څخه استفاده د انسانانو قدرت د طبیعت په مقابل کی ورډیر کی او دوی ته ئې دا موقع ورکړه چی د طبیعت بعضی اړخونه د ځان په خوښه واړوی .

[۲] د کرهڼې زده کړه :

د لومړنی انسانانو دوهم خدمت چی اولنی تمدن ته ترقی ورکړل هغه د نباتاتو اهلی کول وه . او دا هم ثابته ده چی د مخه تر دې چی انسانان حیوانات اهلی کی و زراعت ته متوجه شویدی مو ږ چی ډیر حیوانات اوس لرو او دا حیوانات هغه وخت اهلی شویدی چی انسانانو و ځان ته دائمی مسکن پیدا کی چی پدې حساب د نباتاتو څخه استفاده کول تر حیواناتو د مخه دی .

د ځنګکی په اکثرو ځایو کی انسانانو تر ډیره وخت پوری د حبوباتو او میوه جاتو څخه استفاده کول ځکه چی د دې غذا لاس ته راوستل ډیر آسان وه او د هغو حبوباتو څخه چی دوی استفاده کول عبارت د غنمو ، اوربشو او جودرو څخه وه او وروسته تر دې چی انسانانو د زراعت فن زده کړ او دائمی مسکن ئې ځانته پیدا کی نو د حیواناتو اهلی کولو ته ئې ملاوتړل .

[۳] د فلزاتو څخه استفاده :

طبعی فلزات انسانانو د ډیری پخوا زمانو څخه پیژندل او د هغه څخه ئې استفاده کول ځکه چی د افلزات د ډبرو سره مخلوط وه نو انسانانو صرف د هغو ډبرو څخه استفاده کول چی بعضی فلزات ورسره ګډوه او په دغه وخت کی حقیقی فلز کاری نه وه شروع شوی کله چی انسانانو نسوای کولای چی د افلزات د ډبرو څخه جدا کی

[پاته په ۲۷ مخ کی]

دخارجي منابعو څخه

# په نړۍ کی لومړۍ مجله

په نړۍ کی لومړۍ مجله په ۱۸۲۰ میلادی کال کی په لندن کی نشر او چاپ شوه چی نوم ئې [پنی] ؤ.
لاکن لومړۍ رسمی مجله چی د نړۍ لنځۍ مجلې دهغې د دوله څخه دی په ۱۸۳۹ میلادی کال کښې دفرانسې په پایتخت پاریس کی چاپ او نشر شوه اود مجلې نوم [لاروودۍ موند] وټاکل شو اود نوموړې مجلې مدیر [برلوز] نومیدی چی دهغه وخت او عصر د معرفو او پیاوړو لیکوالو څخه بلل کیدی.



# دطبی علامې دپاره ولې مار ټاکل شوی دی؟

د پخوانیو کیسو او افسانو له مخې څو پیړۍ تر میلاد د مخه په پخوانی یونان کی به یو ځی هغو کسانو حق درلودی چی د ناروغانو او رنځورانو علاج وکړی چی کاهنان د «اپیدور» نومیدل او د «اپیدور» دیونانیانو په عقیده د طب دخدای ځای ؤ کاهنانو د اپیدور په نامه په یوه محل کښې یو لوی محراب جوړ کړی ؤ چی دهغه په یوه برخه کی به ماران روزل کیده چی ددوی په عقیده سره دغه پاک ماران د شپې له خوا د رنځورانو علاج ته ورتله او هغوی ته به ئې شفا ورکوله.
(د بناغلی غور کوال ژباړه)

---

[د ۲۶ مخ پاته]

## د انسانانو لومړۍ ....

اما هغه وخت چی دوی د اور څخه استفاده شروع کړله او ورو ورو سته دې ئې وکولای شوای چی د اور په واسطه فلز د ډبرو څخه جدا کړی او د هغه څخه مختلف افزار او آلات جوړ کی اولین فلز چی دوی په خالص ډول استفاده څنی وکړله. هغه مس دی هغه وخت چی دوی د مس په اهمیت وپوهیدل نو ډبری به ئې په اور کی واچولې چی د هغه څخه مس ولاس ته راولی ددوی دا کار کرار، کرار ددوی تجربې ورزیاتولې اود بعضی نورو ډبرو سره چی نور فلزات پکښې موجود وه آشنا شول او حتې دهری ډبری د زوبان درجه ورمعلومه شوله اودوی بعضی نور فلزات لکه قلعی، او سپنه هم کشف کړه او هم دغه رنګه ئې دا زده کړه چی ددوو فلزو د یو ځای کیدلو څخه یو نوی فلز لاس ته راځی لکه قلعی او مس چی ئې سره یو ځای کړه او د هغه څخه ئې یو نوی فلز د ژیړو په نامه جوړ کی او مقاومت ئې نسبت دواړو ته ډیر دی چی په تدریج او ورو سته کی او سپنه هم ددوی د خوا کشف شول. اود او سپنې استعمال هم د انسانانو پر ژوند مثبت تاثیر واچوی. اود هغو آلاتو په واسطه چی د او سپنې څخه ئې جوړ ول د طبیعت په مقابل کی ښه استفاده څنی وکړل.

# د هنر په باغ کې رژېدلي ګلان

سږ کال چې جمعه څلرمه د ثور وه په ډېر حسرت او تأسف یوې ترافیکي پېښې زموږ د هنر په باغ کې څو ګلان را ورژول چې د دې خاورې په زړه پورې او ښکلي هنر رها او خلک ئې خواشیني او غمزده کړل. مرحوم غلام دستګیر شیدا - مرحوم محمد غازي طبله ږغوونکی، مرحوم میا جان شیدائي مرحوم محمد یونس نومي د دې فاجعې له قربانیانو څخه دي، سلیم کندهاري، غلام حسن دلربا ږغوونکی - محراب الدین نومي ټپیان دي.

دا چې دوی مود موسیقۍ په کور کې د هیواد په زړه پوري هنرمندان وه او دوی چې تل د دې خاورې خلک خوښ او مسرور ساتلي وه دا د هنر هغه کمال و کرامت ؤ چې دوی د زړه په وینو لاس ته ور وستلی ؤ.

خلک خو ډېر مري پدې کوچۍ بار کې داسې څوک لا هم پیدا کیږي چې په مرګ ئې ډېر د خدای مخلوق خوښي لاد لاسه کوي، کله چې د یوه وطن دوسته شخص، د یوه عالم او د یوه هنرمند او داسې نور وضایع واقع کیږي خلک د هغه له حسرت او تأثر څخه ځان نسي خلاصولای.

استاد غلام دستګیر چې د دې خاورې پر هر څه [شیدا] ؤ



. داسې څوک به لږ پیدا سي چې دده خوش آوازیه به یو آن نسه وی محظوظ کړی یا به دده د هنرمندانه شخصیت څخه ځان ږیچی خصوصاً په کندهار کی ده ډېر قدردر لودا وده ښاد یو په ډېر و مجالسو کی ئې ګډون کاوه د استاد پدا (۵۳) کاله عمر کی چې د (۴۳) کلو راهیسی یا په بل عبارت د لس کلنی سن څخه د ساز او آواز سره دده سرو کار وو د ۱۳۱۹ کال راهیسی مو دراد یو پر لار دده د حنجرې څخه دده هغه زړه ته فرحت ور کونکی آواز اورېدلی دی چې څوک . ئې د ستاینی څخه خودداری نسی کولای

ده مرحوم به ویل چې پر ښو لا نه وم ولاړ شوی چې ستر ګی می د موسیقی تارونه و پېژندل - کله چې می په ځلمیتوب کی وغوښتل چې دژوندانه کارو بار ته لاس وروا چوم د موسیقی هغه طبعی دلر با ئی قدرت و بلی خوا ته نه پرېښو لم ځکه زه چې د موسیقی په ماحول کی زېږېدلی وم نو می د خپل مرحوم اکا [استاد نوروز خان] ولمنی ته لاس ور واچاوه کله چې به په کال کی یوه یا دوې میاشتی داچانس میسر

شو چې د هند سفر و کړم نو هلته به می د استا د [عبدالوحید خان] څخه چې د هند د کلاسیک موسیقی پر آسمان یو روښانه ستوری و استفاده کول دې سړی ماغوندی په سلو شاګردان در لودل چې دده له بر کته به بهره مند او په یو څه پوه جامعی ته وړ اندی کېدل .

استاد شیدا په مملکت کی د استاد قاسم مرحوم په مدح کی هم ډېر څه ویل او دا ئې دیوې خوږې خاطرې په توګه د ځان سره ساتلی وه چې د استاد قاسم په ملګر تیا ئې د اعلیحضرت شهید [محمد نادرشاه] په حضور کی څو خیالونه ویلی و .

په هند کی [ام کرنات ټ کور] د موسیقی یو لوی استاد چې د شیدا د تشویق په لار کی ئې قدم وهلی دی هغه به ئې په ښه نامه یادا وه شیدا مرحوم په هند کی د خپل هنرمندانه موفقیت په هکله تصدیق نامه هم تر لاسه کړی وه .

مرحوم شیدا په خپل (۵۳) کلنی عمر کی درې ودونه کړی وه چې اوس ئې دوې ښځې - ۱۴ لو ڼی او زامن ژوندی دی مرحوم میاچان شیدائی ئې مشر زوی و چې دده سره یو ځای مړ شو .

ده ایران - پاکستان - هند - او شوروی اتحاد ته هم سفرونه کړی او کنسر ټونه ئې ور کړی وه .

## مرحوم میاجان (شیدائی)

پدې غمجنه ترافیکی پېښه کی چې د سهار پر پنځو بجو د کوهدامن څخه و کابل ته د راتګ په لار کی [کلای مراد بېګ] ته نژدې وشوه د شیدا مرحوم [۴۳] کلن ښکلی زوی میا شیدائی هم ځوانیمرګ شو



میا شیدائی ځکه چې پر پلار ګران زوی و نو په خارجی سفرونو کی به یې کله کله د ځان ملګری کاوه او د موسیقی په کورکی به ئې دده د بلدیت زیار کینښ څو چې دی هم د مرحوم پلار تر پاملرنه لاندی یو حد ته رسیدلی و او اوس ئې یوزیات تعداد علاقه مندان درلوده .

## لالا اختر

دهمدې میاشتې په سر کې د کندهار یو مشهور رباب غږونکی اختر محمد چې په لالا اختر مسمی او د فیض محمدزو وو په طبیعي مرګ لدې جهانه سترګې پټې کړې .

لالا اختر چې سن ئې د (۶۸) کالو په حدودو کښې تخمینوو پخوا د کریم بابا مرحوم چې د سلیم کندهاري پلار وو په دسته کې رباب

واهه له هغه وروسته په ئې د کندهار په شوقي محافلو یا چې به د کابل د موسیقي هنرمندان راغله ده به ئې په سازوو کې ګډون کاوه .

د لالا اختر مرحوم څخه چې څو زامن پاته او ځوانان دي ټول ئې دده پر قدم رهي او د موسیقي آلات غږولای شي .

موږ ددې یادونې په ترځ کې د دوی مرحوم مینو ته د مهربان او لایزال خدای څخه بخښنه او د جنت غوښتنه کوو اوپاته کسانو ته ئې صبر . [عمرزی]



د عکس کینې اړخ ته دوهم نفر سلیم کندهاري او دریم نفر ئې میا شیدایي لیدل کیږي

مرحوم میا شیدائي یو کال د مخه وفات کړی ؤ او یوزوی ئې چې د یوې میاشتې ؤ هم درلود افغانستان رادیو دده ځوا ئیمر ۳۰ [۸] آوازونه ثبت کړي او ساتلي دي .

# طبله غږونکی مرحوم محمد غازی

ددې غمناکه واقعې قربانیانو څخه یو ۴۶ کلنې محمد غازی مرحوم ؤ چې په [بابه غازي] سره هم پیژندل شوی وو ده په طبله غږولو کې پوره مهارت درلود استاد سلامت علي دده په حق کې ویلې وه چې غازي یو پوخ طبله غږونکی دی ۴ ساعته چې ده طبلې

وهلې وی نو استاد سلامت علي خان وویل چې داده رڅا او هر طبله وهونکې په وس پوره نه وی .

محمد غازی د [استاد محمد] او د هغه د زوی څخه طبلې زده کړې وې د [۳۰] کالو راهیسې د افغانستان د رادیو همکار وو پخوا د استاد نتو خان په دسته کې ؤ بیا استا د سرآهنګ ته ورغی اوس ئې د مرحوم شیدا په دسته کې طبلې وهلې .

محمد غازی مرحوم د شپږو زامنو او لونو پلار وو .

# د اطلاعاتو او کلتور د وزارت

## معین ښاغلی روښان په کندهار کې



د اطلاعاتو او کلتور د وزارت معین ښاغلی محمد خالد روښان د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د لوی مدیریت کلتوری طباعتی او تبلیغاتی چارې د باختر آژانس آمریت او د راډیو د آخذې دستګاه په مفصل ډول وکتل.

ښاغلی روښان د ثور په دوهمه نیټه د کندهار د والی ښاغلی محمد صدیق سره د کلتوری او مطبوعاتی چارو د انسجام او د کندهار د موزیم د پاره د یوه مساعد او مرکزی ځای د پیدا کولو په باب خبرې وکړې.

ښاغلی روښان د اخباری او طباعتی فعالیتونو پراختیا او د نږدې ولایتونو د پاره د کندهار د طلوع افغان د خپرونو او د دغې ورځپاڼې د وررسولو او د کندهار په ځینو ولسوالیو کې د هغه د خرڅلاو د غوړولو په باب د اطلاعاتو او کلتور د لوی مدیر ښاغلی غلام محی الدین ایوبی ته په ښه توګه د دغه معمول د اجرا کولو د پاره لارښوونه وکړه چې د طلوع افغان ورځپاڼه وروسته له دې هره ورځ سهار خپره شي ځکه چې په همدغه ورځ نورو مرکزونو ته ورسیږي او زیاته استفاده ځنې وشي. او هم ئې د کندهار د مجلې په باب لازمه هدایات ورفرمایل.

د اطلاعاتو او کلتور د وزارت معین د هلمند، هرات او فراه د ولایاتو د کلتوری او مطبوعاتی چارو د کتلو په لړ کې د ثور په لومړی نیټه ما ښام کندهار ته راغی.

د لته تاسی ښاغلی روښان په داسی حال کې چې ښاغلی ایوبی ورسره دی د باختر اژانس د ټیلو ټایپ د دستګاه د کتلو په حال کې وینئ.



د کندهار دخرقې شريفې ښکلې او تاريخي ودانۍ چې د کاشي کارۍ
ميناتورۍ ، ښيښه کارۍ او د يوه پارک د جوړولو کار ئې په
۸۴ جريبه مځکې کې په ۱۳۴۴ کال شروع شوی و اوس دې مقدس
او تاريخي ودانۍ د گنبدې د دننه او د باندې برخې
د کاشي کارۍ، ميناتورۍ او ښيښه کارۍ کار په سلو کې
۹۵ مخ ته تللی دی چې پدې عکس کې د خرقې شريفې
د ودانۍ جنوبي برخه معلوميږي